

واطیعوا الله واطیعوا الرسول واولی الامر منکم

# فتوی د عالمانو د اسلام



## په باب د ناروا کیدو

د ناحق قتلونو او بی گناه خونونو کښ

په مهرونو او دستخطونو د لوی لوی عالمانو او فاضلانو او

د مفتیانو او د قاضیانو د پنجاب او د هندوستان سره

په سرپرستئ او اهتمام

د عالیجناب فخر قوم و ملک او خیرخواه د مسلمانانو او تائید کوونکی

د شریعت او [illegible] خان بهادر شیخ محمد برکت علی خان صاحب دام اقباله

لوی ناظم د انجمن د مسلمانانو د پنجاب لاهور

په کارخانه د میر مولوی سید ممتاز علی صاحب مطبع رفاه عام لاهور کښ چاپ او شایع شو

# استفتاء

دَ انجمن اسلامیّه دَ پنجاب لاهور له عالمانو او ملّایانو دَ پنجاب او دَ هندوستان نه

---

له عالمانُ دَ دین او ملّایانُ او مفتیانُ نه موږ دا پوښتنه کوو - چه ناحق وژل دَ چا عیسائی یا دَ بل یو نامسلم (لکه چه دَ سرحد په ملکو نو کښې داسی وار داتونه ډیر کیږی) په مذهب دَ اسلام او په شریعت کښې روا دی - یا ناجائز او حرام دی - بیان کړی - خدائی مو وبښینه




په مذهب دَ اسلام کښې دَ هر یو بنی آدم ناحق وژل ناجائز او حرام دی - او دا یو شان لوئی گناه دی - خواه هغه سړی مسلمان وی یا نامسلمان عیسائی (فرنگی) یا یهودی یا پارسی (آتش پرست) یا

نه یې ورستنی آیت کښې البته دوه خبرې قابل دَ غور دی اُومړنۍ
دا چې له هغه څان نه چې وژل ئې خدای تعالیٰ حرام کړي دي کم څان
مراد دی - بله دا چې له هغه حق نه کم حق مراد دی چې دَ هغه په سبب
دَ محفوظ الدم څان وژل هم روا کیږي - دَ وړمبئ خبرې په نسبت
اجماع دَ عالمانو او فتوي د احادیث دَ پیغمبر صاحب صلعم په دا شان ده چې له هغه
څان نه چې وژل ئې ناروا دی دَ هر بنی آدم څان مراد دی که مسلمان
وي او که غیر مسلمان وي لیکن دَ هغوی دَ حفاظت او امن دَ پاره دَ
مسلمانانو له طرفه په خپله کښې دَ یو قسم عهد او پیمان شوی وي - پیغمبر
صاحب صلعم فرمایلي دي - من قتل معاهداً لم یرح رائحة الجنة
وان ریحها توجد من مسیرة اربعین خریفاً - رواه البخاری - مشکوٰة شریف
ص۲۹۱ یعنی هر چا چې څوک داسې بنی آدم وُوژلو چې هغه سره عهد و پیمان
شوی وُه نو هغه قاتل به دَ جنّت له خوشبوئ نه محروم پاتې شي اگر که دَ
څلویښتو کالو دَ مزل لاری نه دَ جنّت خوشبوئی موندلی شي .
دا حدیث په بخاری شریف کښې دی - مُعاهد که دَ مفعول صیغه وي
او که فاعل - د دواړو نه هغه کس مراد دی چې دَ مسلمانانو په خپله

نور هلاک وي ـ خدای تعالی فرمائلي دی ـ كَتَبْنَا عَلَىٰ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَنَّهُ

مَنْ قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الْأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ

جَمِيعًا ط سورهٔ مائده رکوع ۵ ـ یعنی مونږ په بنی اسرائیلو باندی دا ولیکل

چه که څوک یو سړی له قصاص یا بی له فساد کولو نه په ملک کښی یو سړی هم

مړ کړی نو ګویا چه هغه ټول بنی آدم ووژل ـ اخرج ابن جریر عن الحسن

انه قیل له فی هذه الآیة اهی لنا کما کانت لبنی اسرائیل قال ای

والذی لا اله غیره ـ تفسیر دُر منثور جلد دویم ص ۲۷۷ یعنی ابن جریر

له امام حسن بصری رح نه روایت کړی دی چه له دوی نه پوښتنه وشوه چه دا آیت په باب

کښی پښتنه وکړه چه ولی مونږ د پاره هم داسی حکم دی لکه چه بنی

اسرائیلو د پاره وه ـ دوی ورته اووی چه او خدای کړه ـ بل ځای خدای فرمائیلی

دی ـ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ـ سورهٔ انعام رکوع ۱۹ ـ

یعنی هیڅ بنی آدم چه وژل ئی ناروا دی مه وژنی مګر چه په حق سره

وی ـ د دی قسم نور هم ډیر آیتونه دی چه په هغوی کښی د بنی آدم د

وژلو سخت ممانعت کړی شوی دی ـ مګر مونږ په سبب د طول د دغوی

د نقل کولو ضرورت نه ګڼړو ـ پس نتیجه آیا تونو ته شول له خوف

کړي وي (ب) یا چا نا مسلمان پادشاه د اسلام ملک فتح کړي
وي او هغوی سره ئې د دوام وده او د امن او حفاظت د پاره
عهد و پیمان کړي وي. (ج) یا دا چه یو مسلمان بادشاه چا بل
نا مسلمان پادشاه سره د غه سې نچبله کښې عهد و پیمان کړي وي
له دې پورتنی بیان نه پس اوس په دی خبره کښې هیڅ شک نه
دی پاتی شوی چه د سرکار انګریزی او د امیر صاحب امیر عبدالرحمن
سلمه الله تعالے په منځ کښې چه د افغانستان جائز فرمان روا دی
که د دویم قسم نه وی نو د دریم قسم معاهده خو ضرور شوی ده
او په دی سبب سره سرکار انګریزی او د هغه خپل رعیت او
د امیر صاحب د رعیت هر یو کس نه معاهد او معاهد ویلی
کیدی شي. او هر کله چه د سرکار انګریزی او د هغه خپل
رعیت او د افغانستان وره رعیت نه هر یو کس کښې د
معاهدی نسبت په خپله کښې موجود دی نو دا خبره یقینی
ده چه هر څوک چه د سرکار انګریزی له قوم (فرنګی) یا د هغه
له رعیت نه هیڅوک هم قتل کړي نو هغه د دی تیر شوی حدیث

کېږي عهد و پيمان شوی وي. ولې چه بابِ مفاعله اشتراك دَ پاره دَی. او دَ هغه فاعل او مفعول هر یو دَ بل قایم‌مقام کېدی شي صاحب دَ مجمع البحار وائی وفیه من قتل معاهداً لم یقبل الله الخ یجوز کسرها یه وفتحها والفتح اشهر واکثر. وهو من کان بینه و بینك عهد واکثر ما یطلق فی الحدیث علی الذمی جلد دوم ص۴۴۳ له دې حدیث نه یقیناً دا ثابت دی چه چا سره چه عهد و پیمان شوی وي دهغه وژل حرام او ناروا دي او دا لوی گناه دَی. او دا هم دَ صاحب دَ مجمع البحار له کلام نه ثابت شُوه چه اگرکه دَ معاهد اطلاق او زیاده استعمال په ذمي کېږي مگر ذمي سره څه دومره مخصوص نه دَی چه هېڅ و چا بل چا ته معاهد ویل دي درست نه وي. بلکه بې له ذمي نه په نورو چا هم چه هغه سره دَ حفاظت او دَ سلامت عهد و پیمان شوی وي دَ معاهد اطلاق کېږي بیا دَ عهد و پیمان څو صورتونه دي (الف) دا چه چا مسلمان بادشاه دَ چا نامسلم قوم په ملك باندې فتوحات حاصل کړي وي او دَ هغه ملك خلقو سره ئې دَ دوی دَ سر و ځان و د حفاظت او سلامتی د پاره عهد و پیمان

الغرض صرف دغه دری صورت دی چه په دُوی کښی دَ محفوظ الدم انسان وژل جائز دی۔ لیکن په دی صورتونو کښی هم صرف دَ اسلام په سلطنت کښی او بیا صرف دَ اسلام قاضی لره پس له پوره تحقیقات دَ شریعت کولو نه دداسی کس قتل کول یا دَ هغه دَ قتل حکم ورکول روا کیدی شی۔ نور څه اله روا نه دی۔

اوس مونږ دَ دی مسئلی تائید دَ پاره دَ قال الله او دَ قال الرسول سند ونه راورو۔ وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ كالقود وحد الردة والرجم تفسیر جلالین جلد اول ص ۶۹ كالقود وقتل المرتد ورجم المحصن تفسیر بیضاوی جلد اول ص ۲۶۲ وذلك كما ورد في الخبر بالكفر بعد الايمان والزنا بعد الاحصان وقتل النفس المعصومة۔ تفسیر روح المعانی جلد دوم ص ۵۹۲

او دا خبره ظاهره دَه چه په سر حدی ملکونو کښی کوم قسم خونونه چه کیږی هغه دی دری صورتونو نه په هیڅ یو کښی داخل نه دی۔ دی دپاره دُدی په ناروا او حرام کیدو کښی هیڅ قدر شک و شبهه نشته۔ له دی بیانونو نه صاف ثابت شو چه ناحق وژل د هیڅ انسان په شریعت

په موجب د جنت له خوشبوئ نه به محروم پاتې شي. له دې نه
دا ثابت شوه چه دې قسم قتل او د ناحق خون په سبب سره
د جنت بوی به هم په قاتل حرام وي. ثواب او نجات شغواړي
د دوېيمي خبرې په نسبت مضرا نو د قرآن مجيد څخه په
صاف طور ليکلي دي. چه هغه حق چه د ده په سبب د محفوظ
الدم څان وژل روا کېږي هغه درې قسم دي
(۱) حق د قصاص چه د هغه په سبب سره د محفوظ الدم بني آدم قتل
کول جائز کېږي.
(۲) مرتد کيدل يعنې چه څوک په اصل کښې مسلمان وي او بيا
صريحًا اسلام پرېږدي او بې د هيڅ قسم تاويل نه بالکل له اسلام
نه منکر شي. د داسې کس وژل هم په شريعت کښې روا دي.
(۳) زنا کول د محصن. او محصن هغه کس دې چه مسلمان او عاقل
بالغ وي او په صحيح او شرعي نکاح سره خپلې ښځې سره
هم بستر شوي وي وغيره وغيره او سره د دې بيا زنا وکړي.
د داسې سړي وژل هم په شريعت کښې روا دي.

سره جنګ کوی) له دی نه هغه خلق مراد دی چه په جار په مسلمانانو
حملی کوی یا صریحاً بد عهدی کوی او د خپل منافقی په کاروونو سره
مسلمانان په بلا او خطره کښ اچوی - او خپل ځان په شان مسلمانانو
کفر ته پری باسی. لکه چه د دی آیتونو د مخکی وروستو آیتونو نه چه موږ
ورته خیال کوو دغه مطلب په ښه شان ذهن نشین کښیږی - د دی
پورتنی آیة یعنی وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وړاندې وروستو داسی دی
وَقَاتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَاتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ
الْمُعْتَدِينَ - وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُمْ مِنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ
سورهٔ بقره رکوع ۲۴ - یعنی د خدای په لاره کی هغو خلقو سره جنګ کوئ
چه تاسو سره جنګ کوی او زیاتی مه کوی - بی شک خدای تعالی زیاتی
کوونکی نه خوښوی - او د دوی وژنی هر چیرته چه ئی بیا مومئ او ئی باسی
چیرته نه چه تاسو ئی ایستلی وئ -

او د دی آیة یعنی وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وړاندې وروستو
داسی دی - فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ وَاللَّهُ أَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوا
أَتُرِيدُونَ أَنْ تَهْدُوا مَنْ أَضَلَّ اللَّهُ وَمَنْ يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا

او اسلام کښې جائز نه دی ـ بلکه ډیر سخت ګناه دی ـ پیغمبر صاحب صلعم فرمائلی دی ـ

(۱) الکبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس ـ رواه البخاری ـ مشکوٰة شريف صـ ۹

(۲) عبدالله بن مسعود فرمائلی دی قال رسول الله صلعم لا تقتل نفس ظلما الا كان على ابن آدم الاول كفل من دمها لانه اول من سن القتل متفق عليه ـ مشکوٰة شريف صـ ۲۵ ذکر رسول الله صلعم اذ سئل عن الكبائر فقال الشرك بالله وقتل النفس وعقوق الوالدين صحيح مسلم شريف صـ ۶۴

اوس آخر کښې مونږ دا خبره ظاهر ول مناسب ګڼرو چه د قرآن شريف په کم کم آیة کښې چه په عام طور سره د قتل عام حکم ورکړی شوی دی (مثلاً) وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ سورة بقر رکوع ۲۴ یعنی وُوژنئ دوی هر چرته ئې چه بیا مومئ یا دا آیت وَاقتلوهم حيث وجدتموهم سورة نساء رکوع ۱۲ یعنی وئې وژنئ چرته چه ئې بیا مومئ ـ او دا آیة چه وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً ـ سورة توبه رکوع ۵ ـ یعنی عموماً مشرکانو

له دوی نه هغه کسان (چه هغو خلقو کښی لاړ شی وصل شی چه کومو قومونو
او ستاسو په مینځ کښی لیکلی عهد و پیمان شوی وی . یا دا چه هغوی
داسی حال کښی تاسو له درشی چه له جنګ کولو نه تاسو سره او هم خپل
قوم سره ستړی شوی وی - یعنی له دوی منافقانو نه هغه کسان چه
هغو خلقو له لاړ شی چه ستاسو د هغوی سره عهد و پیمان شوی وی . یا هغه
کسان چه له جنګ کولو داسی بیزار شی تاسو ته راشی چه نه د خپل قوم
په ملاتړ تاسو سره جنګ کولی شی او نه ستاسو د طرفه دی خپل قوم سره
جنګیدلی شی) د دوی قتل عام حکم نه مستثنی او خارج دی - یعنی
داسی کسان هرګز مه وژنی -

او ددی آیة وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً - سباق او سیاق یعنی وړاندی
ورستو په دی شان سره دی - إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِنْدَ اللّٰهِ اثْنَا عَشَرَ
شَهْرًا فِي كِتَابِ اللّٰهِ يَوْمَ خَلَقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ ذٰلِكَ
الدِّينُ الْقَيِّمُ فَلَا تَظْلِمُوا فِيهِنَّ أَنْفُسَكُمْ وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا
يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ - سوره توبه رکوع ۵ یعنی
بیشکی د خدای تعالی په نزد لوح محفوظ کښی له اوله ورځی نه دولس میاشتی دی

وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا فَتَكُونُونَ سَوَاءً فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ حَتّٰى يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيرًا ـ إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلٰى قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَنْ يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ـ سورهٔ نساء رکوع ۱۲ ـ یعنی ای مسلمانو دا تاسو څه کوئ چه تاسو منافقانو د پاره دوه ټولی جوړ شوی یئ ـ او خدای تعالے خو دوئ په سبب د بد وعملونو مردود کړی دی ـ تاسو غواړئ چه داسی خلقو ته هدایت وکړی چه دوئ خدای تعالیٰ پخپله گمراه کړی دی ـ او حال دا دی چه څوك چه رب پاك گمراه کړی دی نو ته ای محمد صلعم هیڅری هغوی د پاره هیڅ لار نه شی موندی ـ (ای مسلمانو) هغوی دا غوښتل چه تاسو کافران شئ لکه چه هغوی پخپله دی ـ چه بیا تاسو سره یو شان شئ پس تاسو له دوئ نه هیڅوك خپل دوست مه جوړوئ ترڅو چه دوی د خدای په لاری له سره هر څه خپل پری ږدی ـ نو بیا که چری دوی واوړی نو وئ نیسئ او چرته چه ئې مومئ وئ وژنئ ـ او له دوی نه هیڅوك هم خپل دوست مه جوړوئ ـ لیکن

# فہرست اسامی شریفۂ مصدقین فتوای قتل ناجائز حسب ذیل اینکہ

جناب مفتی مولوی محمد عبد اللہ صاحب
ٹونکی میر مجلس مستشار العلما لاہور

جناب ابو الصفا مولوی قاضی میر احمد شاہ
صاحب رضوانی پشاوری

جناب سید مولوی محمد نذیر حسین
صاحب محدث دہلوی

جناب مولوی عبد الحی صاحب ابن آبادی
لکھنوی منتظم دار العلوم ندوۃ العلما لکھنؤ

جناب مولوی غلام محمد صاحب ہشیارپوری
رکن اعظم ندوۃ العلما لکھنؤ

جناب ابو الحامد مولوی محمد عبد الحمید
صاحب لکھنوی

جناب ابو سعید مولوی محمد حسین
صاحب بٹالوی

جناب مولوی غلام محمد صاحب بگوی
امام مسجد شاہی لاہور

جناب مولوی محمد صاحب
لدھیانوی

جناب مولوی ابو محمد عبد اللہ الانصاری
ناظم تعلیم دینیات مدرسۃ العلوم علیگڈھ

جناب مفتی محمد عبد الرحیم صاحب
پشاوری

جناب ملا حافظ عزت اللہ صاحب
ساکن زخی ضلع پشاور

جناب مولوی قاضی ظفر الدین صاحب
ساکن گوجرانوالہ

جناب ملا حافظ حامد شاہ صاحب
خطیب جامع مسجد مہابتخان پشاور

آسمانونو او زمکه پیدا کړی دی ـ په شمار دولس دی ـ چه له دوی نه څلور اشهر حرم دی ـ دغه سم دین دی ـ پس په دی میاشتو کښی په ځپل ځانونو ظلم مه کوی ـ او مشرکانو سره په ټولو میاشتو کښی جنګ کوی ـ لکه چه هغوی تاسو سره په ټولو میاشتو کښی جنګیږی او پوه شئ چه بی شک پاک رب د هغو خلقو سل دی چه دوی له کفر او له شرک ـ او له عهد شکنی او د حرام په میاشتو کښی له جنګونو نه ځان ساتی ـ ای خلقوله دی مذکور او ذکر شوی تمام آیاتونو د سیاق او محل نه په ښه شان معلومیږی چه د دی قسم قتلونو او د ناحق خونونو لکه چه عموماً په سرحدی علاقو کښی کیږی دین د اسلام او شریعت د پیغمبر علیه السلام هرګز هرګز اجازت نه دی ورکړی (بلکه په ټولو مذهب حرام او ناروا دی) اسلام خو لا د هغو بد عهد منافقانو د قتل د معافی هم حکم ورکړی دی چه هغوی هغه قوم کښی لاړشی وصل شی چه هغوی سره له مخه مسلمانانو عهد او پیمان کړی وی ـ د قانون قدرت لحاظ د پاره له دی نه زیاته نرمی به څه وی ؟

راقم قاضی میر احمد شاه رضوانی پیښاوری مرحوم

جناب مولوی ابو محمد غلام رسول
صاحب امرتسری
جناب مولوی عبد العزیز صاحب
لدھیانوی
جناب مولوی محمد حسن صاحب فیضی
مدرس مدرسہ نعمانیہ لاہور
جناب قاضی ربیع اللہ صاحب ساکن
ٹیہی فی ضلع پشاور
جناب سید محمد عبد السلام الدہلوی نبیرہ
جناب مولانا شمس العلما سید محمد نذیر حسین
صاحب مد ظلہ العالی المحدث الدہلوی
جناب مولوی محمد ابراہیم صاحب دہلوی
ابن مولوی محمد صاحب فقیر
جناب مولوی خلیل احمد صاحب
مدرس اول مدرسہ سہارنپور [illegible]

جناب مولوی عبد الرحمن صاحب بر[illegible]
مولوی غلام علی صاحب مرحوم قصوری
مولوی غلام احمد صاحب مدرس اول
مدرسہ نعمانیہ لاہور
جناب مولوی سید احمد صاحب
امام جامع مسجد دہلی
جناب مولوی عبد الجبار صاحب
غزنوی امرتسری
جناب سید محمد ابو الحسن الدہلوی نبیرۂ خورد
جناب مولانا شمس العلما سید محمد نذیر حسین
صاحب مد ظلہ العالی المحدث الدہلوی
مداح بشیر و نذیر جناب مولوی محمد حسین
صاحب المتخلص بفقیر
جناب مولوی رشید احمد صاحب گنگوہی
جناب مولوی محمود حسن صاحب مدرس اول [illegible]